# دکرونا وبا
# او
# زموږ مذهبي
# جذبه!




ليکوال: فقيه العصر

حضرت مولوی مفتی عبدالهادی حماد صاحب حفظه الله

رئيس الجامعة

مدرسة العلوم الاسلامية الحمادية

حماديه اسلاميه مدرسه

## نشرونکي اداره

facebook AhnafMediaHouse YouTube

# دکرونا وبا او زموږ مذهبي جذبه!

په نشرولو کي يې تاسو د اخلاص همکاري وکړئ، يعني ښه ډېر يې نشر کړئ!

غواړم خپل نظر وليکم مطلب مي دچا د نظر رد نه دئ بلکي مقصود مي خپل مسؤليت ادا کول دي.

ممکن ليکنه لږ اوږده سي خو ستاسو څخه د زغم هيله کوم تر څو لاندي ټکي دقيق مطالعه کړئ.

ا: عام خلک خو څه کوي ! نن په يو مجلس کي ځينو معروفو خاصو خلکو د کرونا وبا په اړه لاندي خبري را ته وکړي البته زما نظر نه دئ، زه ددوی نظر ته کامل احترام لرم:




الف: کرونا نسته دا صرف د کفارو يوه دسيسه ده.

ب: کرونا دلته نه راځي مسلمانان نه وژني دا صرف د کافرانو لپاره ده.

ج: مدرسي او مسجدونه په هيڅ صورت کي بايد بند نه سي.

د: دا ناروغي صرف ددې لپاره په دومره زور مشهوره سوه، چي خلک د اسلام له شعائرو را وګرځوي او اسلامي شعائر بند کړي.

هـ: په تاريخ کی داسي نه وه سوې، چي حرمين بند سي دا لومړی ځل دئ، چي په ډېرو اسلامي هيوادونو کي يې مسجدونه بند کړه حرمين شريفين يې هم بند کړه، چي دا د کافرانو يوه ارزو وه.

و: موږ د ډاکټرانو څخه و پوښتل هغوی را ته وويل: په کوم کس کي، چي څومره قوت زيات وي هغومره يې ددې ناروغی سره مقاومت زيات وي، بناء د مسلمان مقاومت په اذکارو باندی زياتيږی، په جماعت او مدرسه کي زياتيږي، په دين زياتيږي، که مو جماعتونه او مسجدونه پرېښوول، مقاومت مو کميږي که دغه ناجوړي را غلل ژر اثر درباندي کوي، ددنيا د خلکو په قول جماعتونه مه پرېږدئ.

ز: د وبا څخه تېښته داسي ده لکه فرار يوم الزحف، يعني کبيره ګناه ده، د مسجد څخه منع کېدل او دعامه ديني



ځایونو څخه منع کېدل هم یو ډول تېښته ده، دا هم کبیره ګناه ده.

ح: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: لا عدوی ولا طیرة ولا هامة...الحدیث، یعني یو بل ته د ناروغی انتقال نسته. دا دجاهلیت عقیده ده. هر څه دالله جل جلاله په تقدیر کي دي یعني دا ناروغي هیڅ یو و بل ته انتقالیږي د انتقالېدو عقیده صحیح نه ده دشریعت او حدیث خلاف ده.

ط: خلک مه بېروئ، دخلکو عقیدې دالله جل جلاله پر تقدیر ور جوړي کړئ. موږ د ډا کټرانو څخه اورېدلي دي، چي دغه ناروغي پر هغه چا باندي زیات اثر کوي، چي ډېر ځني بېرېږي.

۲: پورته خبري ما دنورو خواصو خلکو څخه واورېدې، هغوی د عزت خلک وه، ما دوی ته په احترام لږ وضاحتونه ځني وغوښتل خو زما لپاره کافي نه وه که څه هم زما خبرو د ځینو په خبرو کي لږ تغیر راوستی ځکه مي دغه لیکنه وکړه، چي د دوی نظر ته په احترام خپل نظر ولیکم او څومره، چي زه په مذهبي مسائلو معلومات لرم دخپل استعداد مطابق هغه شریک کړم بیا الله جل جلاله او دې ملت پر نه یم زما په نظر کي څو شیان دي:

الف: که دا وبا د کافرانو دسیسه وي نو بیا ولي یې دومره ډېر کافران ووژل؟

ب: که وبا مسلمانان نه وژني نو ولی یې په عمري خلافت کي ۲۵ زره مسلمانان ووژل؟ چي پکښي صحابه او تابعین هم موجود وه، آن تردې، چي عبیده بن جراح رضي الله عنه، چي د اسلامي خلافت له لوري ټاکل سوی والي وو او وتلی صحابي د همدې وبا څخه وفات سو ، حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه، چي وتلی صحابي او وتلی عالم هم ددې وبا څخه وفات سو.

ج: تدبیر او اسباب په کار اچول نبوي حکم دئ، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: اعقلها وتوکل علی الله....الحدیث ، یعني د اوښي ګونډه وتړه بیا پر الله جل جلاله باندي توکل وکړه په داسي صورت کي زموږ دخپل هیواد مسلمانان ډاکټران، یا دخپل ښار او ناحیې متدین ډاکټران موږ ته وایي، چی دا ناروغي یو وبل ته سره

اخستل کیږي او مسجد ته په تګ سره کېدای سي تاته دا ناروغي ورسیږي او ته بیا هم مسجد او مدرسې ته ځي دا به د تدبیر پر ښوول نه وي؟ د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددغه حکم پر ښوول به نه وي، چي فرمایي: اعقلها وتوکل علی الله...؟

د: زموږ د مذهب کتابونو، شامي، البحر الرائق، مبسوط لسرخسي او داسي نورو کتابونو ښکاره مسئله را نقل کړې ده، چي مسجد یعني جماعت ته تلل هغه وخت پاتیږي، چي د دښمن خطره وي، ناروغي وي، مخته کوم ځېرونکی حیوان وي یا هم ته مسلمان نادارە وي پوروړی درته ولاړ وي.

هـ: رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه کس مسجد له تګ څخه منع کوي، چي پیاز او اوږه یې خوړلې وي نو کوم کس ته چي له امله یې هلاکونکې ناروغي رسیږي هغه ته به بیا چیري اجازه وي، چي مسجد ته ولاړ سي.

و: هغه هیوادونه مه ښوروه، چي موږ یې اهل السنة نه بولو یا یې د نورو مذهبونو پیروان بولو د حنفي مذهب پیروانو ناپیلو او نا دولتي علماوو هم د مدرسو د رخصت حکم صادر کړی دئ، د جماعت د اختصار او خطبو د اختصار حکم یې صادر کړی دئ.

ز: که دا وایروس ددې لپاره عام سوی وي، چي صرف اسلامي شعائر په بندوي نو بیا خو کافرانو ته لومړی پکار وو، چي ځانونه ځني وساتي یا لږ تاوان وزغمي اسلامي هیوادونه په برباد کړي تر اوسه خو نوي فیصده تاوان کافرانو ګاللی دئ، په زرګونه انسانان یې وژل سوي دي د میلیاردونو پیسو کارخانې یې تړل سوی دي، نور مصارف یې په زیاته پیمانه سوي دي، که یوازي داسلامي شعائرو د منع لپاره وي نو بیا ولې ددوی په زرګونه عبادت ځایونه، په زرګونه هغه اجتماعتي ځایونه بند سوی دي، چي دوی په میلنونه پیسې عوائد لاسته ځني راوړي. که د یوې خوا عبادت ځایونه تړل سوی دي دبلې خوا بیا ګومره خلک الله جل جلاله ته متوجه سوي دي، څومره خلکو په عبادتونو کي زیاتوالی را وستلی دئ، څومره صدقات خلکو وکړل او کوي یې څومره زاری الله جل جلاله ته شروع



دي. د دين د حفاظت وعده خو الله جل جلاله کړې ده. دا کله کافران منع کولای سي.

ح: که دا وايروس دوی عام کړی وي نو بيا په تاريخ کي په لس ګونه واره وباوی راغلي دي هغه چا را وستلي دي؟

ط: دالله جل جلاله له لوري نه بلل د کافرانو د لاسه يې بلل دا خپله د صحيح عقيدې خلاف خبره نه ده؟ که الله جل جلاله عذاب راوستلی وي ، دوی يې سبب وي نو بيا ځان ځني ساتل نه دي پکار؟

ي: دا خبره يقيني ده ، چي اذکار دانسان په وجود کي تغير راولي. شفاء او معنوي قوت په حاصليږي اما د الله جل جلاله دقانون له مخي دهغو اسبابو ځای نه سي نيولای ، چي الله جل جلاله دانسان د بقاء او نماء لپاره پيدا کړي دي لکه خوراک ، څښاک او داسي نور... که داسي وي نو بيا خلک ولي او به چيښي، ولي غذا لرونکي شيان خوري ولي خوراک کوي خو صرف ذکر دي کوي دا مېلمستياوي خو بايد بيخي پريږدي.

ک: که څوک پوه سي ، چي په يقيني ډول په مسجد کي د وبا په ناروغی اخته کېږم او بيا مسجد ته ولاړ نه سي، زما له اندده دا کار بيخي د فرار يوم الزحف په ډول نه دئ او نه کبيره ګناه ده. ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

لا يورد ممرض علی مصحح. رواه البخاري، رقم:۵۷۱۷

ژباړه: ناروغ دي د روغ سره نه خلط کېږي.(هسي نه، ناروغي يې جوړ کس ته ورسي)

بل ځای کي رسول الله صلی عليه وسلم فرمايي:

فر من المجذوم فرارک من الاسد. بخاري ، کتاب الطب، باب الجذام .

ژباړه: د فس زده څخه داسي چټک ليري سه لکه د زمري څخه چي ځان ليري کوې.

همدا ډول رسول الله عليه وسلم فرمايي:

اذا سمعتم بالطاعون بارض فلاتدخلوها واذا وقع بارض وانتم بها فلاتخرجوها منها.

ژباړه: که تاسو دیوې سیمې په اړه د طاعون وارېدل مه ورځئ. (هسې نه تاسو په دې ناروغۍ اخته سئ) او که تاسو په هغه سیمه کې واست نو بیا مه ځنې وزئ. (هسې نه تاسو دا ناروغي د ځان سره یو سئ نور په اخته کړئ)

مطلب دادئ، چې ناروغي یو له بله اخستل کیږي او ځان ساتل ځنې پکار دي همدا نبوي ارشاد دئ.

ل: کوم حدیث، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دئ، چې لا عدوی ولا طیرة.... ددغه حدیث مطلب بیخي ډېرو شارحینو په واضحو ټکو بیان کړی دئ او د پورتنیو حدیثونو سره یې تطبیق ورکړی دئ. خصوصاً ابن حجر په فتح الباري: ۱۰\۱۶۱ او امام ننوی په شرح مسلم: ۷\۳۷۲ په ښکاره ټکو دا خبره رانقل کړې ده، چې دیوه انسان څخه بل انسان ته د ناروغۍ تلل بدون سبب د جاهلیت عقیده ده، کرکه به ثوک نه کوي البته د اسبابو په اعتبار بدون شک دیوه کس څخه بل کس ته ناروغي تللای سي.

م: دا خبره ریشتیا ده، چې د مسلمان ډېرول نه دي پکار البته متوجه کول یې پکار دي لکه ځرنګه، چې د مسلمانانو په تقدیر پوه کول پکار دي همدا ډول د تدبیر او داسبابو د استعمال په اهمیت یې هم پوه کول پکار دي. بله خبره داده، چې د ډاکټرانو پر دې خبره باندې باور کوو، چې دا ناروغي پر قوت لرونکو خلکو ډېر اثر نه کوي نو بیا د تدبیرونو او اسبابو د استعمال په اړه ولې د ډاکټرانو خبري نه منو؟

۳: زما له نظره دا ناروغي خطرناکه ده که کوم څوک په ځان پوه سي، چې زه ناروغ یم هغه دي مسجد ته نه ځي که دده په وجه نور کسان په ناروغۍ اخته سي دا یو مسؤلیت دئ.

۴: په داسې موضوعاتو کې زموږ د مذهب حکم دادئ، چې د مسلمان حاذق طبیب (مسلمان ماهر ډاکټر) پر خبره باندې اعتماد وکړل سي.

۵: تش په ګومان باندې شرعي حکم تغیر نه کوي هغه وخت تغیر کوي، چې یقین یا غالب ګومان د خطر راسي.

۶: مسجد ته تګ، مدرسې ته تګ، د عامه دیني ځایونو څخه راګرځېدل دي د مسلمانانو ډاکټرانو رایې ته

مفوض سي.

۷: که متدین ډاکټر تاسو ته وویل چې د مدرسې رخصتول یا مسجد ته نه تګ تاسو د خطر څخه ژغوري ددې

ناروغی لپاره تدبیر منل یې پر تاسو لازم دي.

۸: که متدین ډاکټر حکم کوي، چې ماشومان مو په مدرسو، مکتبو او داسې نورو مراکزو کې یقیني متضرر کیږي

تاسو ماشومان راګرځوئ.

۹: تدابیر او اسباب په کار واچوئ بیا پر الله جل جلاله باندې توکل وکړئ، کله، چې موجوده ظاهري او معنوي

تدابیر په کار واچوئ بیا نو هیڅ وېره مه کوئ، هغه څه به پیښېږي، چې په تقدیر کې لیکلې وي.

۱۰: وروستی خبره مې داده، چې خدای دې نه کړي که زموږ غریب او ویجاړ ملک ته دا ناروغي راغلل ان شاء الله په

ویجاړونکي شکل نه راځي او بیا یې خدای مه کړه د نورو هیوادونو په څېر خلک ډېر ووژل، هغه خلک به الهي

مسؤلیت نه لري؟، چې خلک د اسبابو له استعماله منع کوي او یا احتیاط د عقیدې خرابوالی بولي؟ دغسې خلک بیا

الله جل جلاله او دې ملت ته جواب ویلای سي؟

ستاسو ورور: مولوي عبدالهادي حماد ۲۷ رجب المرجب ۱۴۴۱

محتاج دعا حشمت الله غفرله ولوالدیه

www.facebook.com/AhnafMediaHouse